


الدولة الإسلامية

# ديرشگوني قيمتي وصيتونه

د اسلامي دولت د اميرانو او مجاهدينو لپاره

ليكنه الشيخ المجاهد

عبد المنعم بن عزِّ الدِّين البدوي

أبو حمزة المهاجر (رحمه اللّه)

## ديرشگوني

# قيمتي وصيتونه

د اسلامي دولت د اميرانو او مجاهدينو لپاره

ليكنه الشيخ المجاهد

**عبد المنعم بن عزّ الدِّين البدوي**

أبو حمزة المهاجر (رحمه الله)



# د الهمه مکتبې سريزه

الحمد لله، والصلاة والسلام على رسول الله، وعلى آله وصحبه ومن والاه، وبعد:

پدې باید ټول پوه شي چې زړونو ته هره رسيدونکې خبره، تر هغې زړونه په څپو نشي راوستي او نه يې پرمختګ ته هڅولی شي، ترڅو چې له دغو خبرو ويني نه څاڅي، ځکه هره خبره چې ژوندۍ پاتې کيږي هغه د يو ژوندي انسان په زړه کې رالويه شوې وي، هر چې هغه خبرې دي چې په خولو کې زيږدلي او ژبو ګذار کړې وي او ويونکي يې د هغې په خاطر کوم جهاد نه وي کړی نو هغه مړې زيږي هيڅ ژوند پکې نه وي.[1]

(۱) د سيد قطب له ويناو څخه.

**مجاهده ورور** مونږ ستا لپاره د رڼا او نور نه ډکې داسې خبرې غوره کړي چې د اسلامي دولت د يو مشر له زړه راوتې دي، هغه وزير چې شهيد شوی-باذن الله- ابو احمزه المهاجر، هغه انسان چې وينې يې د رافدين په خاوره توی شوې، بيا له هغه ځايه راپورته او ژوندی شوې او اوس د هغه د مينه والو په زړونو کې ژوند کوي.

د شيخ رحمه الله د مرګ نه پنځه کاله وروسته الله تعالی دا توفيق راکړ چې د اميرانو او مجاهدينو په نوم د هغه رحمه الله وصيتونه د الهمه مکتبې په چاپخانو کې چاپ کړو، ترڅو ترې د شيخ بچي او هغه ورونه استفاده واخلي چې د خلافت ماڼۍ يې درولې ده.

د الله تعالى نه سوال كوو چې د مهاجر رحمه الله لپاره دغه كلمات د هغه د نيكيو په تله كې واچوي او د اسلامي دولت اميرانو او مجاهدينو ته پرې ګټه ورسوي.



# د ليکوال سريزه

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله والصلاة والسلام على رسول الله، وعلى آله ومن والاه، أما بعد:

**مجاهده ورووه:** که څه هم زه د پوهې دعوه نه کوم ليکن دغه يو څو نصيحتونه مې درته د کتابونو د مينځ او د نيکانو د خولو څخه را ټول کړي ترڅو ترې فائده واخلئ، د الله تعالى څخه مې سوال دى چې ما او تاسو ته پرې کټه ورسوي.

ابو حمزه المهاجر

١ رمضان ١٤٢٨ه

# وصيت ١

## خپل نيت د الله تعالی لپاره خالص کړئ

ځکه چې په اخلاص کې د دنيا او آخرت کاميابي ده؛ رسول الله ﷺ فرمايي:« تَكَفَّلَ اللهُ لِمَنْ جَاهَدَ فِي سَبِيلِهِ، لَا يُخْرِجُهُ مِنْ بَيْتِهِ إِلَّا جِهَادٌ فِي سَبِيلِهِ، وَتَصْدِيقُ كَلِمَتِهِ، بِأَنْ يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ، أَوْ يُرْجِعَهُ إِلَى مَسْكَنِهِ الَّذِي خَرَجَ مِنْهُ، مَعَ مَا نَالَ مِنْ أَجْرٍ أَوْ غَنِيمَةٍ »[٢]

**ژباړه**:الله د هغه سړي لپاره د دوه خبرو ضمانت کوي چې د الله تعالی په لار کې د جهاد لپاره ووځي، (پدې شرط)چې وتل يې يواځې دالله تعالی په لار کې د جهاد، او د الله تعالی د خبرو د تصديق په خاطر وي، نو دغه انسان به؛ يا:الله تعالی جنت ته داخل کړي(يعني که پدې سفر کې شهيد شي) او يا به يې

(٢) متفق عليه

خپل کورته په خير راستون کړي چې اجر او يا هم غنيمت به ورسره وي.

**وروه:** خپل دغه مبارک عمل يواځې د دې لپاره وکړه چې دالله تعالى کلمه لوړه شي، د أبو موسیٰ ﵁ څخه روايت دی وايي: چې د رسول الله ﷺ څخه چا د هغه سړي په اړه کې پوښتنه وکړه چې د بهادرۍ، ملاتړ او يا د رياء له امله جنګ کوي کوم ډول يې د الله په لار کې دی؟ نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: «مَنْ قَاتَلَ لِتَكُونَ كَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا فَهُوَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ»[٣]

**ژباړه:** څوک چې پدې خاطر جنګ کوي چې د الله تعالى کلمه پر ټولو لوړه شي همدغه د الله تعالى په لاره کې دی.

(٣)دحديث متن متفق عليه دی.

# وصيت (٢)

## دخپل رعيت په مينځ کې انصاف او د هغوي لپاره خير خواهي لټوه.

ځکه«هر هغه څوک چې پر لسو کسانو امير پاتې شوی وي، د قيامت په ورځ به لاس تړلی راوستل شي، خلاصون به يې په انصاف او تباهي به يې په ظلم کې وي»[٤] او «هغه امير چې د مسلمانانو کوم کار ورته حواله شوی وي، مګر دا پکې کوښښ نه کوي او نه پکې خيرا خواهي لټوي؛ مګر د دغو مسلمانانو سره به جنت ته داخل نه شي»[٥]

---

(٤)دحديث متن احمد وغيره مرفوع روايت کړی.

(٥)دحديث متن مسلم روايت کړی.

او«هر هغه امير چې پداسې حالت کې مړ شي چې په زړه کې يې د خپل رعيت سره دوکه پرته وي، نوالله تعالى به پرې جنت حرام کړي»(٦)

## وصيت ③

**د رايو په طرحه کې بايد د خپلو ملګرو سره مشوره او بحث وکړې.**

الله تعالى فرمايي: ﴿ وَشَاوِرۡهُمۡ فِي ٱلۡأَمۡرِۖ ﴾ آل عمران: ١٥٩ ، او ته مشوره کوه دوي سره په کار کې.

ته وګوره چې الله تعالى خپل نبيﷺ ته امر کوي چې د خپلو صحابه کرامو رضي الله عنهم سره مشوره کوه – دا په داسې حال کې چې رسول الله ﷺ پوره عقلمند وو- نو تاسو خو بايد په کلکه سره مشوره وکړئ.

(٦) دا حديث متفق عليه دى.

لکه چې په يو اثر کې دی:«هغه څوک به هيڅکله پښيمانه نه شي چې مشوره کوي او هم به نا اميده نه شي چې استخاره کوي»

**چا څه ښه ويلي:**(څوک چې په خپل عقل غره شو، نو ګمراه به شي، او چا چې يواځې په خپله رايه تکيه وکړه نو وبه ښويږي، او چا چې د هوښيارو خلکو سره مشوره وکړه نو په سمه لار به روان وي، او څوک چې د هوښيارو خلکو په مرسته روان وو نو خپلو مرامو ته به ورسيږي.

نو د لوړ امير نه تر ډلګۍ مشر پورې هر امير بايد د شورىٰ يو رښتينې مجلس ولري.

دلته مو بايد پام وي چې د هغه چاسره به مشوره نه کوئ چې تاسو ته اړتيا(ضرورت) او يا څه غوښتنې لري او ترلاسه کول يې غواړي او يا يې د مشورې په اړه څه طمع وي، او هم به د

هغه چاسره مشوره نه کوئ چې په يوه رايه نه ودريږي او په تيزۍ سره خپله رايه بدلوي.

په يو متل کې وايي:(رايه پريږده چې ښه خميره شي) او د علي رضي الله عنه څخه روايت دی وايي:(په جنګ کې د سپين ږيري تشه رايه هم د ځلمي د حاضريدو نه بهتره وي)[٧]

➢مشوره په يو ګوښه ځای کې کوئ، ځکه چې يو خو به مو راز په مجلس پورې تړلی او خوندي پاتې وي، او بل به هغه څوک هم کنترول وي چې راز نشي ساتلی.

د دې خبرې د اهميت په اړه ويل شو چې:(مشوره او بحث د رحمت دوه داسې دروازې دي چې هيڅکله به د چا رايه پرې خطا نه شي)[٨]

---

(٧)د دغه روايت متن بيهقي په سنن کبری کې روايت کړی دی.

(٨)دغه خبره د عمر بن عبدالعزيز رحمه الله نه ماوردی په ادب الدين والدنيا وغيره کې روايت کړيده.

## وصيت (۴)

**ګرانه ورور!** پام کوه چيرته داسې څوک په کوم مسئوليت ونه ګمارې چې (پالشي، متملق او غوړ ژبې وي) يواځې ستا خوشامدي کوي، د بدو صلاح کارانو څخه ځان وساته، او څوک چې درته د نصيحت په ډول سخته خبره کوي نو د صبر څخه کار واخله، د هغه خبره په ډير تحمل سره واوره ، خو ديته دې هم بايد فکر وی، چې د نصحيت خبري د پوهانو، عقلمندو، مشرانو او سرپيتوب د خلکو څخه اخله.

## وصيت (۵)

**د امير لپاره د دين او دنيا لويه ضائعه داده چې د خپل رعيت د احوالو حقيقت ترې ورک شی.**

**نو اميره وروره!** ته يو انسان يې، تاته هيڅ نه معلوميږي چې د خلکو په سينو(زړونو) کې څه پټ دي؟!

پام كوه چيرته د أمنيت په عذر د خلكو څخه ځان ګوښه نكړې، ځكه چې ته خو به په امن شې ليكن خپل رعيت به ضائع كړې، چې بيا به ته دالله تعالی په نزد ډير نا خوښه امير يې!!.

روغ او امانتدار خلك مقرر كړه، ليكن د هر كار څارنه په خپله كوه، ځكه كله ناكله د امانتدار سړي څخه هم خيانت كيږي، الله تعالی داود عليه السلام ته فرمايي﴿ يَٰدَاوُۥدُ إِنَّا جَعَلۡنَٰكَ خَلِيفَةٗ فِي ٱلۡأَرۡضِ فَٱحۡكُم بَيۡنَ ٱلنَّاسِ بِٱلۡحَقِّ وَلَا تَتَّبِعِ ٱلۡهَوَىٰ فَيُضِلَّكَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِۚ ﴾ص: ٢٦

**ژباړه:** اې داوده ته مونږ په ځمكه كې خليفه وګورځولې، نو د خلكو په مينځ كې د حق فيصلې كوه او د خواهشاتو تابعداري مه كوه چې د الله تعالی د لارې څخه به دې ګمراه كړي.

➢ته وګوره! دلته الله تعالی يواځې پدې خبره بس نکړه چې ته خليفه يې، بلکې هغه ته يې د کار کولو امر وکړ، او د نائب په تکيا ځان د کار څخه مشغوله کولو ته يې د ګمراهۍ نسبت وکړ.[٩]

په همدې ډول کوم خلک چې د فساد په نيت بحثونه کوي او خبري ورې راوړي د هغه په خبره غوږ مه ګروه، ځکه د ده مثال د دوکه مار دی، اګر که په ښکاره کې نصيحت مند ښکاري، خو خبره يې بيخي شاته هم مه اچوه ځکه کيدايشي چې ريښتونی وی.

په خپلو ملګرو ښه ګمان کوه، ځکه نيک ګمان په درته ډيره ستړتيا را لنډه کړي.

---

(٩) ماوردي د بدائع السلک في طبائع الملک نه نقل کړی دی.

# وصيت (٦)

**امير له پکار دي چې د الله تعالى حقوق او حدود په خپل ځان او بيا په خپلو ملګرو لازم کړي.**

[وجه داده، چې ته د دين لپاره خپل ځان قربانوې، نو بايد احکام يې هم په ځان تطبيق کړې][(١٠)].

بله دا چې ته د به خلکو اصلاح څنګه وکړی شې او ته په خپله فاسد يې!!!، ته به څنګه چاته لار وښايې او ته په خپله ګمراه يې!!!، ځکه دا ممکن نده چې ړوند دې چاته لار وښايې يا دې ذليل چاته عزت ورکړي، ځکه دګناه د ذلت څخه بل لوي ذلت نشته، لکه چې د نيکۍ د عزت نه لوړ عزت نشته.

نو امير له پکار دي چې د بې ځايه کارونو څخه ځان وساتې او د فاسقانو سره ملګرتياوې نه کوي.

(١٠) امام ماوردي په الاحکام السلطانيه کې.

## وصيت ⑦

**پام کوه چې د حالاتو سختي او ناداري دې داسي څه ته اړ نکړي چې په ناحقه يې حاصل کړې.**

ځکه د پراخۍ پر اميد په تنګدستۍ صبر، او د هغې د انجام فضيلت، د داسې ګناه د صادريدو څخه بهتر دی، چې بيا ټول عمر د هغې د ناوړه نتائجو څخه په ويره کې وې، او همدا وجه ده چې د دين دارو مدار په صبر باندې دی.

## وصيت ⑧

**ځان وساته چېرته د رعيت څخه ستا سپرلۍ يا جامې توپير ونلري.**

ځکه چې عمر رضي الله عنه ابو موسی اشعري رضي الله عنه ته ليکلي وو:(...ماته دا خبره را رسيدلې: داسې اوازې دي چې ستا او ستا د خاندان څه خاص قسم لباس او خوراک او سپرلۍ دي!!! چې د نورو مسلمانانو هغه شان نشته!!! نو اې د الله بنده! ځان وساته

چيرته د هغه حيوان(ګډه، چيلي) په څير نشي چې په يوه شنه زمكه تيريده، نو ټول فكر يې په چاقيدو كې شو، خو پدى نه وو خبر چې په چاقيدلو كې يې مرګ دى او پدې هم پوه شه چې كله د ملت ساتونكي بې لارې شي، نو ملت يې هم بې لارې كيږي، او بد بخته هغه څوک دى چې رعيت د ده له امله بد بخته شي.[11]

## وصيت ⑨

**پدې پوه شئ چې د جنګ په اړه كې دغه مشهورې ويناوې د عبرت وړ دي:**

① په جګړه كې صبر ډير دروند دى ② چل پكې پوره قطب دى ③ دارو مدار يې په محنت او كوښښ دى ④ سره سينه يې چوكاټ دى ⑤ احتياط يې واكې دي.

---

(۱۱) كنز العمال كې د الدينورى څخه روايت دى، او هم ابن ابي شيبه دغه شان روايت كړى دى.

**بيا په دغه وينا کې د هرې يوې ځانته ميوه ده:** د **صبر** ميوه تأييد، د **چل** ميوه بريالي توب، د **محنت** او **کوشش** ميوه توفيق، د **سړې سينې** ميوه برکت، او د **احتياط** ميوه سلامتي ده.

د عمرو بن معديکرب رضي الله عنه [12] څخه د جګړې په اړه پوښتنه وشوه، نو هغه وويل:(چاچې پکې صبر وکړ نتيجه به يې ورته ښکاره شي، او څوک چې ترې ستون شو هغه ضائع شو).[13]

نو د عجلت (تلوار) څخه به ځان ساتې؛ ځکه ډير ځل د عجلت په وجه وروسته پښيمانی راځي.

---

(۱۲) په صحابه کرامو کې يو اتل جنګيالی او بهادر وو.

(۱۳) بلاذري په خپل سند سره په خپل کتاب: فتوح البلدان کې ذکر کړی.

# وصيت (١٠)

**د جنګ د سختۍ په وخت په مجاهدينو کې ازمايل شوي ملګري مخکې کړه.**

بيا دغه ملګري په ډلګيو و ويشه؛ ترڅو پرې کمزورى مضبوط، او بُزدله قوي شي، پام کوه چې په وررونو کې در سره مُخَذِّلْ او مُرْجِفْ[١٤] ملګرى نشي، او د جاسوسانو څخه ډير سخت ځان وساته.

ډير ځل-د الله تعالى په حکم- يوه وړه ډلګۍ په لويه ډله غالبه شي.

او ديته هم پام کوه چيرته د جګړې او غزاګانو لپاره تکړه مجاهدين را ټول نکړې چې کمزوري په کور کې خفه پاتې

(١٤) مُخَذِّلْ:هغه څوک چې د جنګ په اړه د ملګرو زړونه ماتوي، جذبې يې سړوي او جهاد ورته بېځايه او بې نتيجې ښکاره کوي، مُرْجِفْ:تشې اوازې او پروپاګنډ خپرونکى.

شی؛ رسول ﷺ فرمايي: (يقينا تاسو سره يواځې د کمزورو پر سر مرسته کيږي)[15]

## وصيت (١١)

**که چرته در سره د زغرو او وسپنيزه خوليو اسانتيا موجوده وه نو ګټه ترې واخله، او دا بايد دبزدلی نښه ونه ګڼل شی.**

ځکه رسول الله ﷺ د ټولو خلکو څخه زيات بهادر وو، خو بيا يې هم زغره اغوستله، او دا د دې خبرې مانع نده چې په مناسبه موقعه سر تور سر جنګ ته و دانګې.

حبيب بن المهلب رحمه الله عليه[16] وايي:(په جګړه کې به هميشه ما ته هغه سړی د دوه تنو په خير سخت وو؛ چې زغره به يې

(١٥) دحديث متن په صحيح بخاری کې دی.

(١٦) حبيب بن مهلب بن ابي صفره : د مروان په زمانه کي مشهور بهادر وو.اعلام للزرکلی.

اغوستې وه، او هغه دوه سرې به راته د يو تن پشان کمزوري ښکاره کيدل چې سرتوري به وو).

د حبيب رحمةالله عليه دا خبره چې بعضې پوهه خلکو واوريده نو ويې ويل:حبيب رښتيا ويلي، ځکه وسله خپله بهتري لري؛ ته نه ګورې چې د چيغې په وخت خلک وايي: هلئ وسله را واخلئ، نه داچې:سرې را واخلئ.[17]

## وصيت (١٢)

**هغه امير هوښيار بلل کيږي چې د خپلو ملګرو لپاره د خوراک دومره توښه ورکړي چې ټوله ورځ پرې د هغوي نفسونه قوي وي.**

ځکه چې مونږ د طالبانو په ملتيا د جنګ پر مهال د شمالي ټلوالې د بعضو مړو عسکرو جيبونه ولټول نو په هغې کې مميز (وڅکې) پرتې وې.

---

(١٧) عيون الاخبار.

## وصیت ⑬

**د امير لپاره پکار دي چې د هرې ډلګۍ لپاره خپل امير وټاکي.**

او د ملګرو سامانونه او موټرې ښه وګوري؛ ترڅو هغه موټرې ترې لرې کړی شي چې د خرابیدو امکان يې واضح وي، په خاصه توګه د اوږد سفر او جنګ پر مهال.

## وصیت ⑭

**بايد په يو موټر کې د دريو مجاهدينو څخه زيات سپاره نکړی شي.**

مګر هغه وخت چې د مصلحت تقاضا وي او هم بايد د ګروپونو په مينځ کې امنيتي رابطه موجود وي، چې د جنګ او خبرو شفرونه ورسره وی.

# وصيت (۱۵)

**په امير لازم دي چې خپلو ملګرو او مجاهدينو ته د عزم او ثبات ويناوې وکړي، ترڅو د هغوي زړونه په دښمن د کاميابۍ لپاره وهڅول شي.**

او هم بايد ورته د نصرت داسې اسباب بيان کړی شي د ښمن يې په سترګو کې کمزوری راشي؛ الله تعالى فرمايي: ﴿ إِذْ يُرِيكَهُمُ ٱللَّهُ فِى مَنَامِكَ قَلِيلًاۖ وَلَوْ أَرَىٰكَهُمْ كَثِيرًا لَّفَشِلْتُمْ وَلَتَنَٰزَعْتُمْ فِى ٱلْأَمْرِ ﴾ الأنفال: ٤٣

**ژباړه:** کله چې تا ته الله تعالى دوی په خوب کې لږ وښودل، که چيرته يې درته ډير ښودلي وی نو تاسو به کمزوري شوي وی، او (دجګړي) په اړه به مو اختلاف کړی وی.

## وصيت ⑯

### امير لپاره پکار دي چې د جنګ ساحه ښه وګوري

او په داسې ځای کې جګړه پيل نکړي چې دښمن پرې په آسانۍ التفاف (دشا له پلوه را تاويدل) کولای شي، همداړول به ملګري دومره لرې هم نه ليږي چې روغ راتلل يې ګران وي.

## وصيت ⑰

### رسول الله ﷺ فرمايی:(جنګ دوکه او چل دی)[18].

مهلب رحمه الله عليه[19] وايي: په جنګ کې چلونه استعمالوئ ځکه د دې اثر د کومکي عسکرو د ليږلو څخه ډير زيات دی.

---

(۱۸) يا دا چې جنګ د دوکې نوم دی. حديث متن متفق عليه دی.

(۱۹) مهلب ابن ابي صفره ابن حبان په ثقات التابعين کی ذکر کړی،وايی:...په خراسان د حجاج له لورې اته کال والي پاتې شوی، او ابن حجر په تهذيب التهذيب کې د ابن صبيه نه نقل کوي، وايي:په خپل وخت کې ترټولو بهادر انسان وو.

## په جنګي چلونو کې لاندې ډولونه هم دي:

① جاسوسان خپرول ② د احوالو راغونډول ③په جګړو کې د تَوْرِيِې[۲۰] څخه کار اخيستل؛ ځکه د رسول الله ﷺ عادت مبارک دا وو چې کله به يې ديوې غزا اراده لرله نو توريه به يې د بلې کوله.

شاعر وايي: إذا ضاقَ صَدْرُ المَرْءِ عَنْ كَتْمِ سِرِّه ... فَصَدْرُ الذي يُسْتودَعُ السِّرَّ أَضْيَقُ

**ژباړه:** کله چې د يو سړي سينه د راز په ساتنه تنګه شي، نو چا له چې راز ورکوي، د هغه سينه خو به پرې ډيره تنګه وي.

همدا راز دښمن ته په هر وخت کې ويښ اوسئ ترڅو: ① دربانديې د نږدې نه را ونه دانګي. ② يا دربانديې د لرې نه حمله ونکړي. ③ يا درته په دوکه پټ نشي. ④ او يا دربانديې د تللو څخه وروسته را ونه ګرځي.

---

(۲۰) توريه ديته وايي: چې ته يو کار کوې او داسې الفاظ د هغې په اړه وکاروې چې د اوريدونکي ترې يو او ستا ترې بل مراد وي.

## وصیت ۱۸

**د امیر د هوښیارتیا او تجربې څخه دا خبره هم ده چې د موقع نه استفاده وکړي.**

[څکه موقعه د سترګو په رپ کې تیریږي، بیا به پچو ته ګورې او ګډې به درڅخه تللې وي].

پکار ده چې په لومړي سر کې حمله وکړی شي نه په لکۍ کې.

دیو شعرمعنا ده:کله بادونه را اولوځي نو غنیمت یې وګڼه، څکه د ناکامۍ په وخت بادونه ولاړ وي.

## وصیت ۱۹

**د لښکر(عسکري) امیر لپاره پکار دي:**

چې هغه چاته د استشهادي عملیاتو اجازه ورکړي د چا په شهادت چې جهاد ته د مسلمانانو شوق پیدا کیږي او د نورو مجاهدینو جذبه پرې را پاریږي، بالعکس هغه ملګري ته به

اجازه نه ورکوي چې د هغه له امله د ملګرو زړونه ماتيږي؛ لکه مشهور قومندان...، ځکه خو د انسان زړه د بدن په ډيره خوندي برخه کې پروت دی ترڅو ورته دښمن ونه رسي.

## وصيت (۲۰)

**امير بايد د هغه چا د وژلو، يا نيولو اجازه ورنکړي چې پر سر يې د ملګرو صف او يووالي ته نقصان رسي.**

اګر که دغه کار په څه وجه جائز هم وي، ځکه د جګړې په زمانه کې د مجاهدينو د صفونو (قطارونو) يو والی داسې مصلحت دی، چې بل هيڅ يو ورسره نه تلل کيږي.

## وصيت (۲۱)

**د بيځايه وينو تويلو څخه بايد په کلکه او په ډيره سختۍ سره ځان وساتل شي.**

ځکه د الله تعالی د غضب او د نعمتونو د زوال تر ټولو لوی لامل بې ځايه ويني تويول دي، همدا راز پام کوه چيرته ځان يا

ملګري په حرامو تقويه نه کړي، ځکه چې په عاجله توګه خو به ځان تقويه کړي، خو نتيجه به دې کمزورې وي، بلکه دا چې د الله تعالی او بيا زمونږ (ديوان الخليفه) سره به ستا لپاره هيڅ ډول عذر نه وي.

زه په الله تعالی قسم کوم که د اهل سنتو د يو بيګناه د وينې په اړه دعوا راغله چې په نا حقه تويه شوې وه، نو مونږ به ورته خامخا انصاف ورسوو.

## وصيت (۲۲)

**پام کوه د کومو عملياتو په اسانتيا دوکه نشې، کيدايشي وروسته ګړنګ ډير خطرناک وي.**

لدې امله بايد د نن ترڅنګ د سبا فکر هم وکړې، ځکه بيکاره امير هغه دی چې د نن فکر کوي او سبا ترې هير وي.

# وصيت (٢٣)

## د سزا او جزا قانون بايد ولرې.

ترڅو يې په مټ ښه کار کونکي ته بدله ورکړې، کامياب ګروپ په شا وټپوي، او بهادر مجاهد د خلکو په مخکې ونازوې، بالمقابل غلت کار کونکي له سزا ورکړي[اګر که ورسره په يوځو ورځو خبرو نه کولو ولې نه وي] ځکه د امير لپاره جائز دي چې غلطي کونکي له سزا ورکړي؛که چيرته دا کار ونکړی شي نو ښه کار کونکي به ناراسته او بيکاره خلک به جرأت مند شي، چې په نتيجه کې به ټول کار خراب شي.

**يادونه:** بايد نازول د خلکو په مخکې او سزا ورکول پټه وي، بالخصوص هغه خلکو لپاره چې د نورو په وړاندې مخ لري، هر چې فساديان دي، نو هغوي له به ښکاره سزا ورکوي ځکه دا د شريعت حکم دی.

خو پام کوه چیرته په سزا کې د خپلې اندازې څخه زیاتی ونکړې، او نه د چا په معاف کولو پښیمانه شې؛ ځکه شریعت د دې لپاره سزا ورکوي چې خلکو کې اصلاح راشي نه دا چې سینه پرې یخه کړی شي، همداډول د خپلې خولې څخه داسي خبره ونه باسې چې بیا بیرته نه را ستنیږي.

امیر باید په ښښنه یا سزا کې د خپلو خبرو نه توکه جوړه نکړي، او د هغه پولو څخه هیڅکه د خواهش او ظلم په وجه تیر نشي؛ کومې چې الله تعالی د امیر لپاره مقرر کړې دي، ځکه «ظلم د قیات په ورځ تورې تیارې دي»(۲۱).

**همدا ډول وروره!** باید په خپلو ټولو کارونو کې د نرمۍ څخه کار واخلې آن چې په سزا کې هم؛ الله تعالی فرمايي: ﴿وَلَوۡ كُنتَ فَظًّا غَلِيظَ ٱلۡقَلۡبِ لَٱنفَضُّواْ مِنۡ حَوۡلِكَۖ﴾ آل عمران: ۱۵۹

(۲۱) اخرجه مسلم

**ژباړه:** که ته چيرته بد زبانه او سخت زړی وی، نو ملګري به ستا د مجلس څخه تښتيدلي وی.

رسول الله ﷺ فرمايي:«چاته چې د نرمۍ نه کومه برخه ورکړی شویې وي، نو ده ته په همدغه پرتله د خير برخه ورکړل شويې ده او څوک چې د نرمۍ څخه څومره محروم وي هومره به د خير څخه هم محروم وي»(۲۲) همداډول فرمايي:«دا دين ډير مضبوط(قوي)دی، نو د ډيرې نرمۍ څخه پکې کار واخلئ»(۲۳)

---

(۲۲) اخرجه الترمذي وقال حديث حسن صحيح

(۲۳) اخرجه احمد

# وصيت (۲۴)

**پدې پوه شه چې ملګري ستا خبره او امر لدې امله مني چې دوي د الله تعالی څخه ويريږي.**

د هغوي داکار ديني او اخلاقي دی نه دا چې ستا د شخصيت څخه ويريږي، د دې خبرې څخه مقصد دا دی چې هغه چاله ادب(سزا،سخته خبره وغيره) ورکوه چې ته پوهيږې چې په هغه کې دومره دين شته چې دغه ادب به قبول کړي.

که چيرته داسې چاسره مخ شوې؛ چې د هغه ديني جنبه دومره کمزورې وه چې د سزا د قبليدو قابله نه وه، نو داسې انسان سره نرمي کوه، ځکه ځوک چې چاته معافې کولی شي، نو په سزا ورکولو يې هم قادر وي.

➢هغه امير د ډير کمزوري عقل والا دی، چې په لاس لاندې خلکو ظلم کوي.

ته د الله تعالی سره هم انصاف کوه، او دخلکو، دخپل نفس، اهل، او خپلوانو وغیره سره هم انصاف کوه؛ که چیرته دا کار ونه کړي، نو ظلم به در څخه کیږي او څوک چې د الله تعالی د بندګانو سره ظلم کوي الله تعالی به يي مقابله کوي او ورسره به په جنګ وي ترڅو توبه وباسي.

همدا ډول د مظلوم له بد دعایي څخه ځان وساته ځکه د الله تعالی او د مظلوم د دعاء (فریاد) ترمنځ هیڅ پرده نشته، بلکې د اسمان دروازې ورته همیشه خلاصې وي.

باید په شپه او ورځ کې یو ساعت داسې سوچ وهم وکړې، چې په چا خو به دې ظلم نه وي کړی؟!! یا داسې څوک خو به نه وي چې مظلوم وی، او ستا مرستې ته اړتیا لري؟!!.

څوک چې غواړي د الله تعالی غضب پرې په تیزۍ راشي نو ظلم دې وکړي.

# وصیت ۲۵

## د خپلو وروڼو او عامو مسلمانانو سره ښیګړه کوه، زړونه به یې له تاسره وي.

ځکه محبت د سختۍ له امله ختمیږي کیږي او د ښیګړې سره دوام مومي، د خلکو سره ښیګړه کوه، نو د هغوي محبت به ستا سره په اخلاص وي، او ستا عزت به کوي؛ ځکه چې د قوي انسان ښیګړه هم عاجزي(تواضع) شمیرل کیږي.

**عمر بن عبدالعزیز** رحمه الله علیه پدې باب کې بهترین مثال دی: هغه چې به کله په خلکو د یو شرعی امر تطبیقول غوښتل، او ورته به معلومه شوه چې د خلکو زړونه یې منلو ته تیار ندي، نو انتظار به یې وکړ ترڅو موسم راشي او خلکو سره پکې احسان وکړي نو بیا به یې دغه قانون پلی کړ.

د هغه رحمه الله علیه نه دا هم نقل دي:( په قرآن کې الله تعالی لومړی دوه ځل د شرابو بدې بیان کړه او بیا یې حرام کړل لدې امله

زه هم ويريږم چيرته خلک ناڅاپي په داسې کار را ونه نيسم چې له توانه يې بهر وي، انکار وکړی، او فتنه ترې جوړه شي.العقد الفريد

## وصيت (٢٦)

**د هر چا مرتبه وپيژنئ او هم د خلکو ډولونه معلوم کړئ، او يو سړي پدي وجه مخکي کوئ چې:**

(أ) دعلم او فضل خاوند وي، ځکه د هغوي په فضيلت کې ډير دلا يل شته.

(ب) په عمر کې مشر وي، رسول الله ﷺ فرمايي:«هغه څوک زمونږ څخه ندی چې د مشرانو عزت، په کشرانو شفقت او دعالمانو حق ونه پيژني»[٢٤]

(ج) د کومې عزتمندې کورنۍ څخه وي، چې د ټولو په سر کې د نبي کريم ﷺ کورنۍ (آل بيت) دي.

---

(٢٤)ترمذی، احمد،او حاکم په حسن سند روايت کړی دی.

## وصيت (۲۷)

**د ورونو د حال څخه ځان خبروه.**

په ځانګړې توګه د شهيدانو او بنديانو کورنۍ، هغوي په نورو مخکې کوه، د مريضانو پوښتنه کوه او د ورونو سره د خادم په حيث اوسيږه؛ ځکه ته د هغوي څخه يو فرد يې، خو دومره ده چې ستا بار دورند او د الله تعالی په وړاندې ستا حساب ډير دی، نو د سبا ورځې لپاره ډير کار وکړه.

## وصيت (۲۸)

**قبائلو او نورو ډلو ته چې استازي ليږې، نو بايد ښه سړی غوره کړې.**

همدا ډول هغه څوک بايد په احتياط سره غوره شي چې د عامه خلکو سره د معاملې په مواردو کې کار کوي، ځکه د دغه کارمندانو ښه زمونږ ښه او بد يې زمونږ بد دي، خلاصه خبره

داده چې هوښيار او زيرکه انسان غوره کړه نصيحت ته يې بيا ضرورت نشته.

## وصيت ۲۹

**امير صاحبه په خصوصي توګه درته وايم د جاهليت د تعصب او قوم پرستۍ څخه ځان په کلکه وساته.**

ځکه د تاريخ په اوږدو کې هميشه مضبوطه اوقوي پادشاهي د قوم پرستۍ د لاسه برباده شوې ده.

خو د ملت په مينځ کې د قوم پرستۍ د بُت په ماتولو کې د حکمت او هوښيارتيا څخه کار واخله، يواځې زور مه کاروه؛ ځکه کله چې د عراق خلکو د عبدالملک بن مروان پر خلاف د اشعث په مشرۍ پاڅون وکړ- چې د تابعينو ډير غوره خلک پکې هم د اشعث مل وو لکه سعيد بن جبير وغيره- نو په دير

الجماجم(٢٥) کې ورله حجاج بن يوسف په چل ماتې ورکړه نه يوازې په زور.

پدې اړه بيا غوره سياست دادې چې داسې مفسدين، مرتد او متعصبه خلک بايد زر تر زره ختم کړی شي، په ځانګړې توګه مشران يې.

## وصيت (٣٠)

**ټول اميران بايد د لوړ همت، محنت او زيار خاوندان وي.**

د کمزورۍ او بې همتۍ څخه ځان وساته، ځکه انسانانو ته فرياد او کمزوري ښکاره کول ډيره ذليله سپړلۍ ده.

کله چې را وپرځې کوښښ وکه، پاڅه او بيل مزل پيل کړه، ځکه دا خبره په تجربه ثابته ده، چې په کومو ځايونو کې هم د

(٢٥) د دير الجماجم جنګ د حجاج بن يوسف الثقفي او عبد الرحمن بن محمد بن الاشعث په مينځ کې واقع شو او د حجاج بن يوسف په ګټه تمام شو او دير الجماج د کوفې نه اووه فرسخه لې واقع د يوځای نوم دی.

الله تعالی له طرفه فتحه راغلي، د هغي څخه مخکي ډيري پرځوني تيري شوي وي.

# وصيت (١)

## په خپلو خبرو او اعمالو کې الله تعالی ته اخلاص پيدا کړه.

ځکه الله تعالی هغه عمل قبلوي چې پکې اخلاص او په سنت برابر وي، رسول الله ﷺ فرمايي:«يقينا داعمالو دارومدار په نيتونو پورې دی، او هر سړي ته خپل نيت رسي».[٢٦]

همدا ډول فرمايي:«زما دې په هغه ذات قسم وي چې د محمد ﷺ نفس د هغه په لاس کې دی؛ هيڅوک د الله تعالی په لاره کې نه زخمي کيږي مګر د قيامت په ورځ به راشي، پرهر به يې داسې تازه وې لکه په کومه ورځ چې لګيدلې وو، رنګ به يې د وينې وي خو بوی به يې د مسکو وي»[٢٧]

(٢٦) متفق عليه

(٢٧)مسلم

ځکه چې پدې کې د دنيا او آخرت کاميابي ده؛ رسول الله ﷺ فرمايي:« تَكَفَّلَ اللهُ لِمَنْ جَاهَدَ فِي سَبِيلِهِ، لَا يُخْرِجُهُ مِنْ بَيْتِهِ إِلَّا جِهَادٌ فِي سَبِيلِهِ، وَتَصْدِيقُ كَلِمَتِهِ، بِأَنْ يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ، أَوْ يَرْجِعَهُ إِلَى مَسْكَنِهِ الَّذِي خَرَجَ مِنْهُ، مَعَ مَا نَالَ مِنْ أَجْرٍ أَوْ غَنِيمَةٍ »(۲۸)

**ژباړه**:الله د هغه سړي لپاره د دوه خبرو ضمانت کوي چې د الله تعالی په لار کې د جهاد په خاطر له کوره بهر شي، چې وتل يې يواځې د الله تعالی په لار کې د جهاد او د الله تعالی په خبرو د تصديق په اراده وي، نو دغه انسان به يا:الله تعالی جنت ته داخل کړي(يعني چې پدې سفر کې شهيد شي) او يا به يې خپل کور ته په خير راستون کړي چې اجر او يا هم غنيمت به ورسره وي.

(۲۸) متفق عليه

**ورورو!** خپل دغه مبارک عمل يواځې پدې خاطر وکړه چې د الله تعالى کلمه لوړه شي، ځکه د أبو موسى ﵁ څخه روايت دى وايي:چې د رسول الله ﷺ نه چا د هغه سړي په اړه پوښتنه وکړه چې د بهادرۍ ، ملاتړ او يا د رياء لپاره جنګيږي، کوم يو يې د الله په لار کې دى؟ نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:«څوک چې پدې خاطر جنګيږي چې د الله تعالى کلمه پر ټولو لوړه شي، همدغه د الله تعالى په لاره کې دى» (٢٩)

---

(٢٩)دحديث متن متفق عليه دى.

# وصيت (٢)

## د جهاد په ضروري، او واقع کيدونکو مسائلو کې د علماؤ څخه پوښتنه کوه.

ځکه پدې خبره د ټولو علماؤ اجماع ده چې علم د عمل د څخه مخکې پکار دی، رسول الله ﷺ فرمايي:«دعلم طلب(زدکړه،لټول) په هر مسلمان فرض دی»[٣٠]

نو تر هغې څوک مه وژنه او مه د چا مال غنيمت کوه، ترڅو پوه نشي چې دا کار زه ولې کوم؟! پدی باب کې تر ټولو کوچنۍ اندازه دا ده چې تا ته يو معتبر عالم پدې اړه فتوی درکړي.

(٣٠)حديث حسن دی؛ ابن ماجه په خپل سنن او ابن عبد البر په جامع العلم کې روايت کړی.

# وصيت ③

## پام کوه چیرته د الله تعالی د دین په نصرت کې خپلولی او دوستانې ته ونه ګورې.

اګر چې دا خبره په نفس ګرانه وي، خو د الله تعالى دا قول را يادوه چې فرمايي: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ عَدُوِّى وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَآءَ تُلْقُونَ إِلَيْهِم بِٱلْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُواْ بِمَا جَآءَكُم مِّنَ ٱلْحَقِّ ﴾المتحنة: ١

**ژباړه:** اې مؤمنانو تاسو زما او ستاسو دښمنان په دوستۍ سره مه نيسئ، چې تاسو دهغوي سره مينه ښکاره کوئ، حال دا چې هغوي په هغه حق کفر کړي چې تاسو ته راغلى دى.

بله دا ځکه چې د الله تعالى حق ډير واجب،او د هغه د دين کومک ډير ضروي دى.

# وصيت (۴)

**زه په الله تعالی قسم کوم، او دا مې خوښه ده چې ته جنتي شې او د جهنم څخه خلاص شې.**

نو په يوه مهمه مسئله کې زما نصيحت واوره هغه د «**تکفير**»[۳۱] مسئله ده، رسول الله ﷺ فرمايي: «چا چې د يو مؤمن په اړه داسې خبره وکړه چې په هغه کې موجوده نه وه، نو الله

(۳۱) دا په دې زمانه کې په دولت اسلامې د جاهلانو او د امريکا او کفارو د غلامانو له طرفه ترټولو لوې تهمت دی، چې وايي: د اسلامي دولت عقيده د «تکفير» يعنی خلک په ګناه کافر ګڼل يا ورته کافر ويلو ده، په بل عبارت دوې وايې ددولت اسلام مجاهدين خوارج دي،يعنې خلک په ګناه داسلام نه خارج بولې، داخبره هيڅ حقيقت نه لري، خو د اوباما او صليبيانو تهمت دی، نو د سعودی مرتد حاکمان او تالي څټ مردار خواره ملايان يې هم تکراروی، شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله وايې:باطل پرست هميشه د اهل سنت دبدنامولو لپاره د «خوارج»ټاپه استعمالوی.

تعالى به يې د جهنم په ردغة الخبال[٣٢] کنده کې ترهغې وه اوسوي، ترڅو چې د دغې تهمت نه د وتلو لار پيدا نکړي»[٣٣]

**۲۹۰)** پدې پوه شه چې د کفر نوم او حکم د الله تعالى حق دى[٣٤] هيڅ چاته ندي پکار چې د چا په اړه يې استعمال کړي مګر هغه څوک چې شرعا د دى مستحق وي، بلکه دا چې د تکفير[چاته کافر ويلو]لپاره خپل شروط او موانع دي، نو

---

(٣٢)داپه جهنم کې داسې لاندې کنده او ځای دی چې هلته دجهنميانو وينې زوي راجمع کيږي.(نعوذبالله من ذلک)

(٣٣)صحيح ابو داود وغيره.

(٣٤)ابن تيميه رحمه الله په خپل کتاب«الرد على البکري492/2 »کې وايي:چاچې په تا دروا‌غ وويل او ستا د اهل سره يې زنا وکړه، نو تاله حق نشته چې ته هم په هغه درواغ ووايې او د هغه د اهل سره زنا وکړې، ځکه چې درواغ او زنا د الله دحق دوجې نه حرام دی، همداشان چاته کافر ويل داهم دالله تعالى حق دی نو هغه څوک به کافر ګڼلى شي چې الله تعالى او د هغه رسول ﷺ ورته کافر ووايې. همداشان په مجموع الفتاوى125/3 کې وايي:چاته د فاسق يا کافر ويلو مسائل د نومونو او احکامو د مسائلو څخه دی، يعنې په قرآن اوسنت پورې تړلی مسئلې دي.

ترهغې به چاته کافر نه وايو چې ترڅو پکې شرطونه پوره شوي او موانع نفې شوي نه وي،کله، کله داسې هم کيدايشي چې د يو سړي نه به د کفر کار يا خبره صادره شي، خو هغه ته به کافر ځکه نشو ويلی چې د تکفير مانع به موجود وي، همدا ډول هغه څوک چې اسلام يې په يقين ثابت شي، نو هغه به د اسلام څخه نه بهر کيږي مګر په يقين سره.

نو تاته زما دا نصيحت دی چې د تشو ګمانونو څخه ځان وساته، او په کومو مسائلو کی چې د امت د علماؤ اختلاف وي هغی کې پوره احتياط نه کار واخله.

## وصيت ⑤

**هغه د امان لوظنامه،يا د چا سره تړون چې شرعًا صحيح وي نو په هغې پوره والی وکړه.**

او پام کوه چې د شيطان په دوکه کې رانشی؛ ځکه الله تعالی فرمايي: ﴿ فَمَن نَّكَثَ فَإِنَّمَا يَنكُثُ عَلَىٰ نَفْسِهِۦ ﴾ الفتح: ١٠

**ژباړه:** چاچې خپل تړون، لوظ مات کړ، نو ددغې وبال به هم دده په سر وي.

او رسول الله ﷺ فرمايي: «الْمُسْلِمُونَ تَتَكَافَأُ دِمَاؤُهُمْ يَسْعَى بِذِمَّتِهِمْ أَدْنَاهُمْ، وَيُجِيرُ عَلَيْهِمْ أَقْصَاهُمْ، وَهُمْ يَدٌ عَلَى مَنْ سِوَاهُمْ يَرُدُّ مُشِدُّهُمْ عَلَى مُضْعِفِهِمْ وَمُتَسَرِّيهِمْ عَلَى قَاعِدِهِمْ»(۳۵) **ژباړه:** د مسلمانانو وينې يو شان دي، ادنیٰ مسلمان هم چاته امان ورکولی شي، او هم يې ليري د نږدې په ډاډ، چاته پناه ورکولی شي، او مؤمنان دکفارو پر خلاف يو لاس دي، د قوي سپرلۍ خاوند به په کمزوري راستنول کوي، او د لښکر غازيان به په ناستو خلکو.(۳٦)

---

(۳۵)ابو داود احمد او نسائي روايت کړی او حديث صحيح دی.

(۳٦)شمس الحق آبادي د ابو داود په شرحه عون المعبود کې وايي: خطابي ويلي دی: مشد: هغه چا ته ويل کيږي چې د هغه څاروي او سپرلۍ قوي وي، او مضعف هغه ته ويل کيږي چې د هغه سپرلۍ ضعيفه وي. ابن اثير په النهايه کې وايي: د« ومتسريهم على قاعدهم» معنا

**وروره!** پدې هم پوه شه چې مونږ هيڅ يو کشر مجاهد ته د چاسره د معاهدو يا امان ورکولو واک ندی ورکړي، دغه ټول کارونه د امير المؤمنين يا د هغه د نائب په غاړه دي، ځکه غالبا د دولت په اړه د هغوي نظر صحيح او شامل وي.

---

دا ده چې په غازيانو کې قوي به حاصل شوی غنيمت د کمزروي سره شريکوي. خطابي وايي: متسري هغه چا ته ويل کيږي چې په سريه کې ووځي، او د حديث معنا دا ده چې: چې کله امير يا امام د هيواد نه بهر د لښکر د يوې ډلې سره ولاړ شي او کوم غنيمت ترلاسه کړي، نو هغه به د دوی او نور ټول لښکر ترمينځ شريک وي، ځکه هغوی يې مرستندوی دي، ليکن که امام پاتې شو په هيواد کې، نو بيا د ده او ناستو خلکو په غنيمت کې کومه حصه نشته،که چيرته يې د غازيانو لپاره کومه خاصه حصه ګرځولې وي، نو په دواړو صورتونو کې به ورسره هيڅوک شريک نه وي، خو دا مسئله د هغه ناست په حق کې ده چې په لښکر کې ثبت وي.

# وصيت (٦)

## په نيکيو کې ډير زيات کوښښ کوه.

او د ګناه د شومتوب[سپيره والي] ،او د نفس او شيطان د شر څخه ځان وژغوره؛ څکه عمر فاروق رضي الله عنه سعد بن أبي وقاص رضي الله عنه ته وصيت کې ليکلي وو:«زه تا او تا سره موجود د اسلام لښکرو ته د تقوا امر کوم، او تا او ستا ملګرو ته د دی خبرې امر کوم چې د ګناهونو په اړه دومره سخت ځان ساتئ لکه سرى چې د دښمن څخه ځان ساتي، څکه د لښکر ګناهونه د هغوي لپاره د دښمن څخه ډير خطرناکه دي، او د الله تعالى نه په خپلو نفسونو د کنترول دومره ډير سوال کوئ لکه په د ښمن د کاميابيدو سوال کول»[٣٧]

(٣٧)عقد الفريد، بدائع السالك،نهاية الأرب.

## وصیت ⑦

**اې د اسلام لښکرو د لمانځه ډېر سخت اهتمام کوئ.**

ځکه لمونځ زره مضبوطوي، اندامونه تازه کوي، او د ګناه او د فاحشاتو نه انسان منع کوي، مونځ د الله تعالی سره د مناجات ذریعه، او د کومک او نصرت غوښتلو ځای دی، بنده الله تعالی هغه وخت ډیر نږدې وي چې په سجده پروت وي، مونځ د دین ستنه او د ټولو مسلمانانو شعار[علامه]ده، نو بغیر د عذر څخه درنه چیرته لمونځ تاخیر نشي.

## وصیت ⑧

**د ځان خوښی او د خپل ځان صفت کولو[یا د خپل ځان صفت دبل چا څخه اوریدل خوښولو] نه ځان وساته:** په خاصه توګه په هغه وخت کې چې د الله په مدد سره په کوم د ښمن غالبه شي یا فتح راشي؛ ځکه دغه د شیطان ډیره مهمه

موقع وي، ترڅو دربندي د جهاد ثمره خرابه، او ستا د اوږد رباط فائده په دنيا او آخرت کې برباده کړي.

## وصيت ⑨

**دوه شيان داسې دي چې دهغې انجام شرمندگي او تاوان دی:**

① **زياتی**[ظلم او شرک]: الله تعالی فرمايي: ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنَّمَا بَغۡيُكُمۡ عَلَىٰٓ أَنفُسِكُمۖ﴾ يونس: ٢٣

**ژباړه** : اې خلکو ستاسو زياتی، ستاسو په خپلو ځانونو دی.

او ترڅو چې مونږ کې زياتی موجود وي نو هيڅ کله به د الله تعالی له طرفه مرسته او کومک رانشي.

② **دوکه کول**؛ الله تعالی فرمايي: ﴿وَلَا يَحِيقُ ٱلۡمَكۡرُ ٱلسَّيِّئُ إِلَّا بِأَهۡلِهِۦۚ﴾ فاطر: ٤٣

**ژباړه:** نه پيوسته کيږی بد مکر[دوکه کول]مگر په خپل خاوند پوري.

همدا ډول کوم سړی چې دوکه مار وي هغه سره به دوستي هم نکوې.

## وصيت ⑩

**دنفسي خواهشاتو په وړاندې خپل زړه مات کړه.**

ځکه ټول هغه شيان چې زړه يې خوښوي، ضروري نده چې ټول دې وغوښتل شي ﴿إِنَّ ٱلنَّفْسَ لَأَمَّارَةٌۢ بِٱلسُّوٓءِ﴾يوسف: ٥٣

**ژباړه:** يقينا دانسان نفس په بديو امر کوي.

➢نفلي روژې ډيرې نيسه نو پاکدامنه به يې،**خلاصه خبره دا ده:** چې خپل خواهشات کنترول کړه او د هغه څه په اړه کې چې تاته حلال نه وي ځان سخت بخيل کړه، ځکه پدغه موقعه سخت بخل د خپل ځان سره په خوښيو او نا خوښيو کې انصاف دی.

# وصيت (١١)

## هغه ذمه واري چې تاته سپارل شوې بايد په رېښتونې ډول پکې محنت/کوښښ وکړي.

او په هغه شی پسې منډې مه وهه چې بل چاته حواله شوی وي، ځکه الله تعالی ستا څخه د هغې پوښتنه نه کوي، په خپل ټول کار کې د رېښتين ولئ څخه کار واخله ځکه رېښتين ولئ کې خلاصی او درواغو کې هلاکت دی، او «غټ درواغژن هغه څوک دی، چې هر اوريدلی خبر خپروي کوي»[٣٨]

---

(٣٨) د حديث متن مسلم روايت کړی، او ابن حجر ورته په فتح الباری کی صحيح ويلی. مطلب يې دا دی چې ځان سره خبره نه ساتي او نه يې تلي بلکه د راديو په څير چې هرڅه اوري لګياوي نشر کوي يې ديته نه ګوري چې دروغ به وي که رښتيا.

# وصيت (١٢)

**د خپلو ملګرو سره په هغه څه کې موافقه ښکاره کوه چې د الله تعالی د رضا کار وي، او تا له ګناه څخه ليرې کوي.**

او د هغوي په مخ کې موسکی کيږه، په هغوي کې چې څوک ستا څخه مشر وي خبره يي اوره، کله چې ته ملګري وګورې چې په يو کار کې مصروف دي ته هم ورسره لګيا شه، ځکه ستا وزګار کيناستل د هغوي په زړونو کې غوسه او خفګان پيدا کوي، که ملګری دې په يوه خبره سخت شي ته ورته نرم شه  او پدې هم پوه شه چې دا انصاف ندی چې ته په تيزۍ سره سرې په يوکار ملامته کوي.

# وصيت (١٣)

## د خلکو عيبونه مه لټوه

په خاصه توګه ستا د امير او ملګرو، بلکه د دوي عيبونه حتی الوسع پټوه، ترڅو الله تعالی ستا عيبونه پټ کړي، او کوم شی چې ستا څخه پټ دی د هغې د راښکاره کولو کوشش مه کوه، نبي عليه الصلاة والسلام فرمايي:«د ګمان نه ځان وساتئ؛ ځکه ګمان ډيره دروغژنه خبره ده، د چا حالات معلومول او جاسوسي مه کوئ، کينه مه کوئ، يو بل ته مه شا کوئ، بغض مه کوئ، او دالله تعالی بندګان ورونه ورونه شئ»(٣٩)

➢د امام مالک رحمه الله څخه روايت دی وايي:[ما په مدينه کې داسې خلک وليدل چې هيڅ عيب پکې نه وو لکن د خلکو په عيبونو کې خبري شروع کړې نو خلکو هم د هغوي

(٣٩) متفق عليه.

عيبونه بيانول شروع کړل، او داسې خلک مې هم وليدل چې عيبونه پکې وو، خو د خلکو په عيبونو کې يې خبري نه کولې نو خلک هم د دوي د عيبونو نه غلي شول](٤٠)

## وصيت ⑭

### اې د الله تعالى لښکرو پدې پوه شئ:

چې مونږ ته الله تعالى د اسلامي دولت د قيام اوحمايت شرف را په برخه کړی، ليکن پدې هم پوه شئ چې دا د هارون الرشيد رحمه الله دولت ندی چې مونږ وريځې ته داسې خطاب وکړو لکه چې هغه به کولو، دا د کمزورو خلکو دولت دی، مونږ د دښمن نه ويريږو او هغه هم ويروو، لکه څنګه چې به صحابه کرامو په لومړي اسلامي دولت کې کول، هغوي به له ويرې خپله وسله نه پريښوده، په صحابه کرامو رضي الله عنهم داسې

(٤٠)الباجی په شرحه دموطأ کې ذکر کړی. او هم په النکت والنوار وغيره کې.

وخت هم راغلی، چې په مدينه کې د هغوی د کلاوونو په لور(چې ماشومان او زنانه پکې وو) يهودي راغلی او ترې چاپيره ګرځيدلی، ليکن په کلا کې دومره څوک نه وو چې هغه يې مردار کړی وی، تردې چې يوه تورسرې ورکوزه شوه او هغه يې مردارکړ.

**ددی خبرو مطلب دادی:** چې د خلکو سره نرمي کوئ، او هغوي ته د اسلام حقيقي خوند او عزت ور ښکاره کړئ، ځان وساتئ چيرته هغوي د اسلام او د هغه د احکامونه ونه ويروي، که چيرته چا ته کوم تريخ حکم متوجه شو، نو د اسلام دومره خواږه [په خبرو او کارونو کې] ورته وړاندې کړئ چې هغه پرې دغه تريخ حکم قبول کړي.

**خلاصه دا چې:** خلکو ته د دين اسلام او د هغه د احکامو خواږه ښکاره کړئ چې مينه ورسره وکړي، ځکه دا د الله تعالی د غوره بندګانو کار دی چې د بندګانو مينه د الله تعالی سره پيدا

کوي او الله تعالی بندګانو ته محبوب ښکاره کوي او په زمکه خير خواهي لټونکي اوسيږئ.[٤١]

## وصيت ⑮

**صاحب بن عباد** رحمه الله عليه[٤٢] **وايي**:د بادشاه څخه په هيبت کې کيدل لازمی خبره ده او په هغه چا فرض دي چې خبري يې اوري او عقل يې حاضر وي.[٤٣]

نو د امير المؤمنين عزت او احترام په زړه کې پيدا کړه؛ ځکه «دالله تعالی د عزت نه دا خبره هم ده چې د سپين ږيري....او عادل امام اکرام او عزت وکړی شي»[٤٤]، د امير المؤمنين خبره

---

(٤١)په شعب الايمان د بيهقی کې د يو مرفوع حديث نه اقتباس دی چې سند يې ضعيف دی.

(٤٢)ذهبی رحمه الله په سير اعلام النبلاء کی وايي: لوی وزير علامه صاحب، اديب، کاتب، ډير فصيح او ژور علم والا وو، ځکه د هغه خبرې په عربي ادب کې د دليل په توګه وړاندې کيږي اګر چې په عقيده کې يې انحرافات موجود وو.

(٤٣)بدائع السلک في طبائع الملک.

(٤٤) ابوداود، بيهقي، ابن ابي شيبه او بخاري په حسن سند روايت کړی.

منل فرض ده(مګر هغه وخت چې د ګناه امر وکړي)، که هغه انصاف کوو او که ظلم، خو ته به يې خبره منې، د هغه په اړه به په نا حقه د غلطو خبرو څخه ځان وساتې، داسې نه چې د کبيره ګناه تر پولو دې ورسوي او کيدايشي چې ټول عملونه دې برباد شي.

**د اکثم بن صيفي**رحمه الله[٤٥] په وصيتونو کې دا خبره هم راغلې:[د خپلو اميرانو سره د شخړو او خلاف کولو څخه ځان وساتئ .....ځکه هغه سړی د د مسلمانانو د ذلې نه بهر دی چې امير سره خلاف کوي][٤٦]

(٤٥) د عربو مشهور حکيم، چې په اسلام راوړنه کې يې اختلاف دی، چې مسلمان شوی کنه؟ د نبي عليه الصلاة والسلام په زمانه کې وو خو د هغه سره ندی مخامخ شوي.

(٤٦) ابو الشيخ په امثال الحديث کې روايت دی، او هم ابن قتيبه په عيون الاخبار کې.

# وصيت ⑯

## خپل امير ته تسليم شه، او د هغه د رايې او تدبير مطابق وچليږه.

ترڅو د مسلمانانو خبره جدا نشي، او نه يي صف جدا شي، خو دا هغه وخت چې خبره د رايي او اجتهاد وي يا په شريعت کې جواز لري او خالصه ګناه نه وي، بله دا چې ته خو د اجر په طلب پسې راوتی يې، او اجر د امير په خبره اوريدلو او منلو کې دی، ترڅو چې د شريعت خلاف نه وي.

د خپل امير نه د هغې خبرې راز مه پټوه چې د هغې په ذکر کولو کې تاته شرعي مصلحت ښکاري، لکه داسې نقصان چې ټولو مجاهدينو ته متوجه وي، ځکه په دغه وخت کې د هغه خبرول د خير خواهۍ نه شميرل کيږي او نه خبرول يي د امير سره دوکه کول دی او پدی هم پوه شه چې دغه خبره غيبت، او

چغلی نه نده شمار، خو پدې شرط چې ته کومه خبره کوې هغه به تاته په يقين يا غالبه ګمان ثابته وي.

**امام نووی**رحمه الله وايي:[ که چيرته ورته حاجت پيښ شو، نو بيا منع ندی؛ لکه امام يا ذمه وار سړی د يو داسې انسان په اړه خبرول چې هغه د فساد کار کوي، بيا په ذمه وار سړي فرض دي چې د دغه مجرم څخه پرده پورته کړي او د هغه منکر او فساد ختم کړي، **[قاعده داده]** چې هر شی چې د حرام سره مشابه شي هغه حرام نه وي، کله نا کله دغه کار واجب وي او کله مستحب، د حالت مطابق][٤٧]

---

(٤٧)شرح مسلم نووي

➢**مجاهده وروره!** پام کوه چيرته خپله خيانت ونکړې، او يا هم د خيانت ګرو ساتنه ونکړې، هوښياران وايي:[هغه سړی پوره خاين دی چې د خاينانو ساتنه کوي][٤٨]

الله تعالی فرمايي: ﴿ وَإِذَا جَآءَهُمۡ أَمۡرٞ مِّنَ ٱلۡأَمۡنِ أَوِ ٱلۡخَوۡفِ أَذَاعُواْ بِهِۦۖ وَلَوۡ رَدُّوهُ إِلَى ٱلرَّسُولِ وَإِلَىٰٓ أُوْلِي ٱلۡأَمۡرِ مِنۡهُمۡ لَعَلِمَهُ ٱلَّذِينَ يَسۡتَنۢبِطُونَهُۥ مِنۡهُمۡۗ وَلَوۡلَا فَضۡلُ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡ وَرَحۡمَتُهُۥ لَٱتَّبَعۡتُمُ ٱلشَّيۡطَٰنَ إِلَّا قَلِيلٗا ﴾ النساء: ٨٣

**ژباړه:** کله چې دوي ته د امن يا ويرې يوه خبره راشي، نو هغه[بې تحقيقه]خپره کړی،ليکن که چيرته دوي دغه خبره رسول الله ﷺ او د مشری خاوندانو ته ګرځولې وی، نو خامخا تحقيق به هغه خلکو کړی وی چې را وباسي تدبير په دوی

(٤٨)کتاب الزهد د امام احمد، او بيهقی په شعب کی مالک بن دينار څخه روايت کړی.

کې، که چیرته د الله فضل او مهرباني نه وي نو تاسو به د شیطان تابع شوي وی مګر لږ کسان (به ستاسو څخه بچ وي).

## وصيت ⑰

### په خپل امير صبر كوه اګر كه زياتي درباندې كوي.

ځکه چې دا د دین دواجباتو نه ده؛ رسول الله ﷺ فرمايي:«چا چې د خپل امیر څخه داسې کار[یامعامله] ولیدله چې خوښه يې نه شوه، نو په خپل امير دې صبر وکړي » [٤٩]

➢داسې یوه واقعه د صحابه کرامو رضي الله عنهم په زمانه کې هم راغلې وه – چې کله د یزید د بعضې ظلمونو له امله څه خلک د هغه له بیعته ووتل- په روایاتو کې راځي: کله چې د یزید په خلافت کې دحَرِّې مشهوره دردونکې پیښه رامنځته شوه، نو څه خلک د هغه د بیعت څخه لاس په سر شول، چې یو پکې

(٤٩)متفق علیه

عبدالله بن مطيع بن الأسود هم وو، په صحيح مسلم کې حديث دی: عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د هغه خوا ته راغی، نو عبدالله بن مطيع ملګرو ته وويل: ابو عبدالرحمن ته بالښت ورکړي [چې تکيا ووهي] هغه ورته وويل: زه ددی لپاره نه يم راغلی چې تاسره کينم، زما د راتلو مقصد دا دی چې د رسول الله ﷺ يو حديث درته بيان کړم، ماترې په خپله اوريدلی چې بيانوو يې: «چاچې د امير د اطاعت نه لاس راوويست نو د الله تعالی سره به په داسې حال کې مخامخ شي چې هيڅ دليل به ورسره نه وي، او څوک چې په داسې حالت کې مړ شو چې د ده په څټ کې د خليفه بيعت نه وو نو دا د جاهليت په مرګ مړ شو »(٥٠)

---

(٥٠) دابن تيميه رحمه الله فتاوی 190/9 وګوره.

➢**شيخ محمد بن عبدالوهاب** وايي:[زما رايه دا ده چې جهاد د هر امام په ملګرتيا کې جائز دی، که نيک وي او که فاجر...او زما په نيزد د مسلمانانو د هر امام خبره منل او تابعداري کول واجب ده، که نيک وي که فاجر، ترڅو چې يي په ګناه امر نه وي کړی][51]

# وصيت ⑱

**د جهاد په موقعه چې هر چيرته وئ، نو بايد د شپې پهره مقرر کړئ.**

زه هغو درى مجاهدينو ته حلال نه ګڼم چې هغوي چيرته ويده کيږي، او امير مقرر نه کړي او نه پهره ودروي.

د ابو بکر رضي الله عنه د مشهور وصيت يوه برخه داده- کوم چې هغه خپل يو جنګي مشر ته کړی وو-:[ځان وساته چې څوک

(٥١) د محمدبن عبدالوهاب رحمه الله کتاب [الکبائر] او [اصول الايمان]

درباندې د شپې لخوا په غفلت کې بريد وکړي، ځکه په عربو کې دغه قسم بريدونه شته دی][52]

د پهرې په وخت کې ځان په بل کار مه مشغوله کوه، ځکه ته د دښمن مخې ته په يو کندو(سنګر) ناست يې؛ نو د الله تعالى څخه ډير زيات ويريږه، چيرته ملګرى در څخه ضائع نشي.

## وصيت ⑲

**هميشه ځان په جنګي لحاظ تيار ساته؛** ځکه الله تعالى فرمايي: ﴿ وَأَعِدُّواْ لَهُم مَّا ٱسْتَطَعْتُم مِّن قُوَّةٍ وَمِن رِّبَاطِ ٱلْخَيْلِ ﴾ الأنفال: ٦٠

**ژباړه:** او د کفارو لپاره هر هغه څه تيار کړئ چې ستاسو په توان کې وي، د قوت او آسونو ساتلو څخه.

---

(٥٢) هندي په کنزل العمال کې د دې نسبت دينوري ته کړی او ابن عساکر په خپل تاريخ کې هم روايت کړی.

د ځان تيارولو څخه دا خبره هم ده چې هميشه بدني تمرينات کوئ چې بدن مو قوی وي، همدا ډول د جنګ حرکات کوئ.

**يو متل دی وايي:** هر هغه شی چې ته د حاجت په وخت کې غواړي نو هغه به ستا په لاس نه راځي، لدې وجې نه د سبا لپاره د سبا راتللو نه مخکې کار پيل کړه.

## وصيت (٢٠)

**په رباط ډير اهتمام کوه.**

مطلب دا چې خپل ځان د جهاد في سبيل الله لپاره وتړه، پدې سره به ته د اسلام پولې وساتې، د اسلام لښکر به زيات کړې، او د اسلام دښمنان به درنه په ويره کې وي، اګر که وخت درباندې اوږد شي.

**وروره!** که چيرته په داسې ځای کې وې چې دښمن ستانه او ته له دښمن څخه په ويره کې وې، نو همدغې ته رباط وايي؛ الله

تعالى فرمايي: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱصۡبِرُواْ وَصَابِرُواْ وَرَابِطُواْ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ لَعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُونَ ﴾آل عمران: ٢٠٠

**ژباړه:** اې مؤمنانو صبر وکړئ، مضبوط شئ، رباط وکړئ، او د الله تعالى نه ويريږئ ترڅو کامياب شئ.

او رسول الله ﷺ فرمايي:«رِبَاطُ يَوْمٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا عَلَيْهَا»(٥٣)

**ژباړه:** د يوې ورځې رباط(٥٤) د دنيا ومافيها څخه بهتر دی.

---

(٥٣) بخاري وغيره.

(٥٤) رباط ديته وايي:په داسې ځاي کي وخت تيرول چې دمسلمانانو او کفارو ترمينځ پوله وي، پدی هدف چې دکفارو نه دمسلمانانو ساتنه وکړی شي.

# وصيت (۲۱)

## ګرانه وروره د دښمن سره د مخامخ کيدو آرزو مه کوه.

[دا په هغه وخت کې چې ستا دغه تمنا ځان ته د غره کيدو، فخر، او په خپل ځان د تکيا او داسي نورو، له وجی وی] رسول الله ﷺ فرمايي:«تاسو د دښمن د مخامخ کيدو تمنا مه کوئ، او د الله تعالى نه سلامتي وغواړئ، که چيرته د دښمن سره مخامخ شوي نو صبر کوئ، او پدې پوه شئ چې جنت د تورو د سيورو لاندې دی»(۵۵)

➢ کله چې دښمن سره په جنګ کې مخامخ شي نو ډيره دعاء کوه؛ ځکه په دغه وخت کې دعاء ډيره قبليدونکې وي، رسول الله ﷺ د احزاب په ورځ داسې دعاء کړې وه:«اللَّهُمَّ مُنْزِلَ

(۵۵)متفق عليه.

الْكِتَابِ وَمُجْرِيَ السَّحَابِ، وَهَازِمَ الأَحْزَابِ، اللَّهُمَّ اهْزِمْهُمْ وَانْصُرْنَا عَلَيْهِمْ »[٥٦]

**ژباړه**:اى الله! د كتابونو رالېږونكيه!، د وريځو روانونكيه!، د كفارو ډلو ته ماتې وركونكيه، دې ډلو ته ماتې وركړه او مونږ. سره يې پر خلاف مرسته وكړه.

همدا ډول به رسول الله ﷺ دا دعاء هم كوله:«اللّٰهُمَّ أنت عَضُدِي ونَصِيري، بَكَ أحُولُ، وبِكَ أصُولُ، وبكَ أقاتِلُ»[٥٧]

**ژباړه**: اې الله تعالى ته زما مټ او كومكي يې، ستاپه قوت چليږم، او ستا په مدد حمله كوم، او ستا په مدد جګړه كوم.

---

(٥٦) متفق عليه.

(٥٧) ابو داود او ترمذى په حسن روايت كړى دى.

# وصيت (۲۲)

**ځان کې جرأت پيدا کړئ.**

ځکه جرأت د نصرت او کاميابۍ لامل دی، پدې هم پوه شئ چې د الله تعالی لښکرې هميشه د جنګ په ګرمو ساحو کې تمرين او تربيت کيږي.

➢د جنګ په وخت کې د کفارو ظلم او وحشتونه را يادوئ، پدې سره به مو په زړه کې د پرمختګ جذبه قوي کيږي او دا هميشه ياد ساتئ چې دغو کفارو زمونږ خويندې او ميندې بې ابرو کړي، مسلمانان يې د جمعې او لمونځونو څخه منع کړي.

**خلاصه دا چې:** د دين او دنيا هيڅ شی يې ندی پريښی مګر هغه يې خراب کړي.

# وصيت (۲۳)

## کله چې د دښمن په لور ځئ نو ځان سره (رهبر) واخلئ.

دا په هغه مهال چې د ځمکې مو خپله استطلاع [کتنه] نشوه کولای، د ځان سره لازم درمل، وسله او خوراک واخلئ، هغه شی درنه په هيڅ صورت پاتې نشي چې تري په جهاد کې استفاده کوئ، لکه وسله، ستنه، تار، لاسي بجلۍ او داسې نور، دومره درمل بايد درسره واخلې چې يو زخمي ته پرى بيړنۍ مرستي ورکولای شئ، او درد ارامونکې دواء هم درسره کړه، د ځان سره په سفر کې ډيرې جامې مه اخله.

[غزا ته چې ځې نو د هغې نه مخکې نيک اعمال کوه؛ ځکه تاسو د کفارو سره د خپلو نيکو اعمالو په قوت جنګيږئ] (۵۸)

---

(۵۸) بخاري د ابو درداء رضي الله عنه نه روايت کړي او بخارى پرى باب هم ايښی: باب عمل صالح قبل القتال وقال ابو الدرداء...

او غوره عمل دا دي چې د مجاهدينو صف او خبره يو وساتل شي؛ الله تعالى فرمايي: ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلَّذِينَ يُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِهِۦ صَفًّا كَأَنَّهُم بُنۡيَٰنٌ مَّرۡصُوصٌ ﴾ الصف: ٤

**ژباړه**: الله تعالى د هغو خلكو سره مينه كوي چې د الله تعالى په لار كې پداسې صف بندی جنګيږي، ته به وايې چې مضبوطه ابادي ده.

همدا ډول د نيتونو د اختلاف څخه هم ډير سخت ځان وساتئ؛ ځكه د مسلمانانو كلمه چې يو ځل راجمع شي، او بيا په نيتونو كې اختلاف پيداشي نو دا بيا د مسلمانانو كې د لوی اختلاف سبب ګرځي او پدې هم پوه شئ چې سړی په خپلو ورونو خايسته او قوی ښكاري، **يومتل كې وايي**: هغه جنګيالي ته په سپک نظر كتل كيږي، چې يواځې د جنګ ميدان ته را ښكته شي.

# وصيت (۲۴)

«غزا ته د تللو نه مخکې نيک عمل وکړه، ځکه تاسو د خلکو سره په خپلو نيکو عملونو جنګيږئ»[۵۹]

او په ټولو اعمالو کې غوره عمل د مسلمانانو صف او خبره يوه ساتل دي، الله تعالى فرمايي:(إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِهِ صَفًّا كَأَنَّهُمْ بُنْيَانٌ مَرْصُوصٌ)[الصف:٤]

**ژباړه:** يقينا الله تعالى هغه خلکو سره مينه کوي چې د الله تعالى په لاره کې په داسې صف جهاد کوي؛ لکه دوی چې يوه غښتلې وداني وي.

او د نيتونو د اختلاف څخه ځان وساتئ، ځکه کله چې د مسلمانانو خبره يوه شي خو په نيتونو کې اختلاف وي، نو بيا په خپل مينځ کې اختلافات پيدا کيږي، او پدې پوه شئ سړی په

(۵۹) امام بخاري پدې خبره باب ليکلی:(باب عمل صالح قبل القتال) ابو الدرداء وايي:تاسو په خپلو نيکو اعمالو جنګيږئ.

ورونو ښه ښکاري، لکه چې په مثال کې ويل شوي:«سپک هغه دی چې يواځې يو ځای ته ولاړ شي»

## وصيت ㉕

### د دښمن څخه چيرته په رعب کې راتشی.

الله تعالی فرمايي: ﴿ قَالَ رَجُلَانِ مِنَ ٱلَّذِينَ يَخَافُونَ أَنۡعَمَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِمَا ٱدۡخُلُواْ عَلَيۡهِمُ ٱلۡبَابَ فَإِذَا دَخَلۡتُمُوهُ فَإِنَّكُمۡ غَٰلِبُونَۚ وَعَلَى ٱللَّهِ فَتَوَكَّلُوٓاْ إِن كُنتُم مُّؤۡمِنِينَ ﴾ المائدة: ٢٣

هغه دوه کسانو چې د الله تعالی نه ويريدل[الله دې پرې نعمت وکړي] وويل:په دروازه ور ننوځئ، کله چې تاسو ور ننوتئ نو يقينا تاسو به غالبه يئ، او په الله تعالی توکل وکړئ که تاسو مؤمنان يي.

او پدې هم پوه شئ چې نصرت او فتح يواځې د الله تعالى په لاس کې ده: ﴿ إِن يَنصُرْكُمُ ٱللَّهُ فَلَا غَالِبَ لَكُمْ ۖ وَإِن يَخْذُلْكُمْ فَمَن ذَا ٱلَّذِى يَنصُرُكُم مِّنۢ بَعْدِهِۦ ۗ وَعَلَى ٱللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ ٱلْمُؤْمِنُونَ ﴾ آل عمران: ١٦٠

**ژباړه:** که چرته الله تعالى ستاسو سره کومک وکړي، نو هيڅوک به در باندې غالبه نشي او که چيرته مو الله تعالى پريږدي، نو د هغه نه وروسته به درسره څوک کومک وکړي؟! او مؤمنان دې په الله تعالى توکل وکړي.

**امام طبري** رحمه الله عليه د ايت په تفسير کې وايي:[ فَلَا غَالِبَ لَكُمْ : يعنى د الله تعالى د نصرت په ملتيا به درباندی هيڅوک غالبه نشي، اګر که د دنيا د ځنډو او غاړو څخه ټول مخلوق درباندی راغونډ شي، نو د الله تعالى د دښمنانو څخه به د خپل شمير په کم والي يا د دښمن په ډير والي نه ويريږئ، ترڅو چې تاسو د

الله تعالی په امر او د هغه د رسو الله ﷺ په تابعداری کې وي؛ ځکه يقينا غلبه او کاميابي مخې ته ده]

➢په خپلو دعاګانو کې د الله تعالی څخه د خپل نصرت د را نازلولو غوښتنه وکړئ، هغه ته فرياد وکړئ؛ ځکه په نصرت او د نيتونو په صحيح کولو کې د دعاء ډېر نا اشنا اثرات دي؛ الله تعالی فرمايي: ﴿ أَمَّن يُجِيبُ ٱلْمُضْطَرَّ إِذَا دَعَاهُ وَيَكْشِفُ ٱلسُّوٓءَ وَيَجْعَلُكُمْ خُلَفَآءَ ٱلْأَرْضِ ۗ أَءِلَٰهٌ مَّعَ ٱللَّهِ ۚ قَلِيلًا مَّا تَذَكَّرُونَ ﴾ النمل: ٦٢

**ژباړه:** هغه څوک دی چې د پريشانه[حاجت مند] دعاء قبوله کړي او مصيبت ترې لرې کړي او تاسو د ځمکې خلفاء(مشران) وګرځوي؟!!! آيا د الله تعالی سره بل معبود[شريک]شته؟!!!، ډېر کم تاسو پند اخلئ.

# وصيت (٢٦)

**کوم دښمن چې په تاسو حمله کوي او په کور راننوځي د هغه په دفاع او جنګ کې د ډېر زيات محنت اوزيار نه کار واخلئ.**

د ناراستۍ او کمزورۍ څخه ځان وژغورئ، ځکه دغه دواړه داسې مرضونه دي چې رسول الله ﷺ ترې پناه غوښتې، نو تاسو ترې هم پناه وغواړئ.

او پدې هم پوه شئ چې زمونږ په عبادت کې اجر د مشقت په مقدار وي؛ الله تعالى فرمايي: ﴿ وَلَا يُنفِقُونَ نَفَقَةً صَغِيرَةً وَلَا كَبِيرَةً وَلَا يَقْطَعُونَ وَادِيًا إِلَّا كُتِبَ لَهُمْ لِيَجْزِيَهُمُ ٱللَّهُ أَحْسَنَ مَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴾التوبة: ١٢١

او دوي په هيڅ ناو(وادي) نه تيرېږئ مګر د دوي لپاره اجر ليکل کيږي، ترڅو الله تعالى دوی ته د هغه څه غوره بدله ورکړي چې دوی کول.

او رسول الله ﷺ فرمايي:«کوم شی چې تا ته فائده رسوي په هغې حرص کوه، د الله تعالی څخه مدد غواړه او کمزوري مه ښکاره کوه»(٦٠)

## وصيت ㉗

**[اې مسلمانانو!په صبر کې عزت دی او کمزوري ښکاره کول ناکامي ده او د الله تعالی نصرت دصبر سره وی](٦١)**

په جنګ کې بزدلي مرګ دی او حرصناک هميشه محروم وی، کوم خلک چې په جګړو کې مخامخ مړه شوي هغه د هغو څخه ډير کم دي چې په تيښته کې مړه دي، د اسلام په لومړی سر کې اصول دا وو چې يو مؤمن به د لسو کافرو څخه نه تښتي، دغه قانون ته مونږ پدې ورځو کې ډير زيات محتاجه

---

(٦٠)مسلم

(٦١) عيون الاخبار، او عقد الفريد کې دخالد بن وليدؓ نه روايت دی.

يو ، الله تعالى فرمايي: ﴿ وَمَن يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُۥٓ إِلَّا مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ أَوْ مُتَحَيِّزًا إِلَىٰ فِئَةٍ فَقَدْ بَآءَ بِغَضَبٍ مِّنَ ٱللَّهِ وَمَأْوَىٰهُ جَهَنَّمُ ۖ وَبِئْسَ ٱلْمَصِيرُ ﴾[ الأنفال: ١٦]

**ژباړه:** او څوک چې کفارو ته[د جنګ په وخت کی]شا کړي نو يقينا دا د الله تعالى په غضب ککړ شو او د ده ځاى جهنم دى، چې ډير بد ځاى د ورتللو دى-مګر هغه څوک چې د جنګ چل کوى، او يا يوې ډلې خوا ته ورځي[نو هغه په دى حکم کې داخل ندى].

➢خپل امير سره کلک ودريږه او هغه ته هم د جنګ په ګرم وخت کې د صبر وصيت وکړه، ځکه په سخت وخت کې خپې ټينګول د صبر لپاره ضروري دي، د صبر نتيجه خوږه وي او انجام يې کاميابي وي، ځکه څوک لوړو اهدافو ته په ارزوګانو نه رسي.

# وصيت (۲۸)

## د دښمن د ليدلو پر مهال تکبير [الله اکبر] کول مستحب عمل[٦٢] دی.

رسول الله ﷺ چې کله خيبر ته ور ښکاره شو نو ويې فرمايل: «الله اکبر-درې ځل- خيبر ويجاړ شو؛ مونږ چې د يو قوم په علاقه ورشو نو ډير بد سهار دی [دالله د عذاب نه]د ويرول شوو خلکو لپاره»[٦٣].

**امام نووي** رحمه الله وايي: پدې حديث کې اشاره ده چې د دښمن سره د مخامخ کيدو په وخت کې تکبير کول مستحب دي او دغه تکبير د الله تعالی د عمومي ذکر په زمره کې راځي چې د دښمن سره د مخامخ کيدلو په وخت کې پکار وي.

(٦٢) فتح الباری او مشارع الاشواق وګوره

(٦٣) بخاری ومسلم مع شرحه

لکن د ابو موسى رضي الله عنه څخه روايت دى وايي: رسول الله صلى الله عليه وسلم به د جګړې پر مهال چيغي وهل نه خوښول[٦٤]، همدا ډول د قيس بن عبادة رضي الله عنه څخه روايت دى وايي:د رسول الله صلى الله عليه وسلم صحابه كرامو رضي الله عنهم به لوړ اوازونه[چيغى وهل] نه خوښول.

عتبه بن ربيعه چې كله د رسول الله صلى الله عليه وسلم لښكرې وليدلې نو وې ويل:چې ته وګوره دوي د مارانو په شان غلي غلي څښيږي] او كله چې عايشې رضي الله عنها د جمل په ورځ خلك وليدل چې تكبيرونه يې ويل نو هغې وويل :[ډيرې چيغې مه وهئ، ځكه د دښمن سره د مخامخ كيدلو په وخت تكبيرونه د ناكامى سبب ګرځي][٦٥]

---

(٦٤) ابن حجر ورته حسن ويلي.

(٦٥) عيون الاخبار، او عقد الفريد

نو د جنګ په دوران کې غلي اواز سره تکبيرونه ويل مستحب دي، مګر د حملې کولو په وخت يې په اوچته ويل پکار دي.(٦٦)

## وصيت (٢٩)

**په غنيمت کې د غلا څخه په کلکه ځان وساته.**

ځکه الله تعالى فرمايي: ﴿ وَمَن يَغۡلُلۡ يَأۡتِ بِمَا غَلَّ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِۚ ﴾آل عمران: ١٦١

**ژباړه:** څوک چې په غنيمت کې غلا وکړي، نو د قيامت په ورځ به دغه غلا شوی مال راوړي.

او د ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنۡهُمَا څخه روايت دی وايي[په هيڅ قوم کې د غنيمت نه غلا نده ښکاره شوې، مګر د هغوی په زړونو کې د دښمن رعب وليدلی دي ](٦٧)

(٦٦) صبح الأعشي.

(٦٧) الباني موقوف ذکر کړی او ضعيف دی.

# وصيت (۳۰)

**په اخير کې درته د الله تعالى او د هغه د رسول ﷺ وصيت ذکر کوم چې د جګړې آداب يې پکې بيان کړي.**

الله تعالى فرمايلي دي: ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً فَٱثْبُتُواْ وَٱذْكُرُواْ ٱللَّهَ كَثِيرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿٤٥﴾ وَأَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَلَا تَنَـٰزَعُواْ فَتَفْشَلُواْ وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ ۖ وَٱصْبِرُوٓاْ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلصَّـٰبِرِينَ ﴿٤٦﴾ ﴾
الأنفال: ٤٥ – ٤٦

**ژباړه:** اې مؤمنانو کله چې تاسو[ددښمن] د يوې ډلې سره مخامخ شئ، نو ټينګ مو کلکې کړئ او الله تعالى ډير يادوئ ترڅو کامياب شئ او د الله تعالى او د هغه د رسول تابعداري کوئ او په خپلو منځونو کې اختلاف مه کوئ، چې کمزوري به شئ او دبدبه به مو لا ړه شي، او صبر کوئ، يقينا الله تعالى دصابرانو مل دی.

او درسول الله ﷺ وصيت چې فرمايي«دا لله تعالی په لاره کې غزا کوئ، د کفارو سره وجنګيږئ، د غنيمت څخه څه مه پټوئ، دوکه مه کوئ او مثله [دمړي نه اندامونه غوڅول] مه کوئ »[٦٨]

## وصيت ٣١

**د امير المؤمنين لپاره ډيره دعاء کوئ، بيا ستاسو د دې مسکين ورور لپاره، او بيا د دې وصيتونو ژباړه کونکې لپاره.**

ځکه چاسره چې د خپل ورور او د هغه د ايمان غم وي، نو دهغه لپاره د سهار په وخت ، په سجدو ، د آذان په وخت او دټولو نه مهم د جګړې په دوران کې دعاء کوي.

**فضيل بن عياض** رحمه الله وايي[که چيرته ما سره داسې دعاء وی چې هغه يقيني قبوله وي نو م ابه امام[امير المؤمنين]لپاره خاص کړې وی؛ ځکه کله چې هغه اصلاح شي نو زمکه خړوبه شي

(٦٨) صحيح مسلم

او بندګان په امن شي] نو ابن مبارک رحمه الله علیه د هغه سر ښکل کړ او وې ویل:[دغه کار ستانه غیر بل څوک نشي کولی][٦٩]

(٦٩) ابن عساکر په خپل تاریخ کې او ابو نعیم په الحلیه کې، بربهاري په شرح السنه او لالکائي په اصول الاعتقاد کې.

# خاتمه او دعاء

زه دعاء كوم تاسو پرې امين ووايئ:

اللّٰهُمَّ ارزقني الإخلاص في القول والعمل، اللّٰهُمَّ ثبتني على الحق وسدد رأيي، اللّٰهُمَّ لين قلبي لأهل طاعتك بموافقة الحق، وارزقني الغلظة والشدة على أعداءك، اللّٰهُمَّ إني ضعيف عند العمل بطاعتك؛ فارزقني النشاط والقوة عليها، ولا تجعلني من الغافلين، اللّٰهُمَّ اجعلني عندك عظيما، وفي نفسي وضيعا، وعند إخواني محبوبا مُهابا، اللّٰهُمَّ أعذني من الأسر، وارزقني شهادة في سبيلك، ولا تأخذني على غرة، وأحسن خاتمتي في الأمور كلها يا مقلب القلوب، اللّٰهُمَّ امين.

**ستاسو ورور**

**ابو حمزه المهاجر**

**1/رمضان/1428هـ**

